


امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | ۸ |
| ایام | شنبه |
| تاریخ | ۱۴۰۳/۱۲/۱۸ |
| افطار | ٦:۰۰ |
| عشاء | ۷:۱۹ |
| ختم سحری | ٤:٤۳ |
| آذان فجر | ٤:٤۸ |


# د رياست الوزراء د اداري مرستيال په مشرى اداري کمېسيون غونډه وکړه

د اداري کمېسيون غونډه د افغانستان اسلامي امارت د رياست الوزراء د اداري مرستيال مولوي عبدالسلام حنفي په مشرى او د دې کمېسيون د غړو په ګډون ترسره شوه.

په دې غونډه کې لومړی ټاکل شويو کمېټو د کمېسيون له لوري د خپلو ورسپارل شويو دندو په اړه د خپلو فعاليتونو او کړنو راپورونه وړاندې کړل.وروسته د عامې روغتيا او مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارتونو او همدراز د ازموينو ملي ادارې اړوند موضوعات په هر اړخيز ډول وارزول شول او په اړه يې اړين تصميمونه ونيول شول.

مؤسس: عبدالرووف بېنوا    د تاسيس کال۱۳۲۸ لمريز    شنبه د رمضان المبارک ۸ مه ١٤٤٦ق کال، د کب ۱۸مه ١٤٠٣ ل کال،د مارچ ۸مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي ګڼه۵۶۲مه ، پرله پسې ګڼه۶۵۲مه، اتمه دوره

## اسلامي امارت:
# کوربه هېوادونه دې د کډوالۍ نړيوال اصول په پام کې ونيسي



د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت سرپرست مولوي عبدالکبير په دوو جلا جلا ناستو کې په کابل کې د ايران له سفير عليرضا بيګدلي او د پاکستان له سفير عبيدالرحمن نظاماني سره کتلي دي.

ياد وزارت د يوې خبرپاڼې په خپرولو سره ويلي چې په دې کتنو کې نوموړي ايران او پاکستان د افغانستان دوست او مسلمان ګاونډي هېوادونه بللي، چې له همدې امله ګڼ مشترکات لري او له کلونو يې د ميليونونو افغان کډوالو کوربه توب کړي.ده زياته کړې، چې اسلامي امارت د افغان کډوالو له کوربه هېوادونو هيله لري، چې د کډوالو په اړه له زغم او حوصلې څخه کار واخلي.نوموړي ويلي ،چې « په دې وروستيو کې په پاکستان او ايران کې له افغان کډوالو سره ناسم چلند ډېر شوي، موږ له کوربه هېوادونو غواړو چې د کډوالو نړيوال اصول مراعات کړي او له افغانانو سره انساني او اسلامي **۳مخ**

# راتلونکي کال کې د هر افغان د حج لګښت ۲۸۲۰۹۰ افغانۍ ټاکل شوی

د حج او اوقافو وزارت له لوري له عربستان څخه ترلاسه شوي ديرش زره سهميه جدول وروستي شو . په دې اړه د حکومت د اطلاعاتو او رسنيو په مرکز کې راتلونکي شوې غونډې ته په وينا کې د ياد وزارت سر پرست دوکتور نورمحمد ثاقب وويل: د ۱۴۰۴هـ ش کال د حج په پروسه کې د



سعودي عربستان له خوا د راکړل شوي ديرش زره (۳۰۰۰۰) سهميې له مخې، **۳مخ**

# جاپان له افغانستان سره د دوه اړخيزو همکاريو پر زياتوالي ټينګار وکړ

د اسلامي امارت د عامې روغتيا وزارت په مطبوعاتي اعلاميه کې ويلي، چې د دغه وزارت مالي او اداري مرستيال او په افغانستان کې د جاپان سفارت د شارژدافير ميکيو ايزاوا ترمنځ د يوې غونډې په ترځ کې، د روغتيا په سکتور کې د دوه اړخيزو همکاريو د زياتوالي په اړه بحثونه وشول.دغه وزارت د کب په ۱۶مه په يوه مطبوعاتي اعلاميه کې ويلي، چې د عامې روغتيا وزارت مرستيال له ميکيو ايزاوا څخه وغوښتل ،چې د هېواد د روغتيا سکتور سره د جاپان همکارۍ ته دوام ورکړي.د عامې روغتيا وزارت مطبوعاتي اعلاميه کې د جاپان سفارت **۳مخ**

# د کوچنيو او منځنيو متشبثينو د ملاتړ په موخه ۱۵موسسو سره هوکړې وشوې

د صنعت او سوداګرۍ وزارت د تشبثاتو سکتور څخه د ملاتړ او پياوړتيا په موخه له ۱۵ ملي او نړېوالو موسسو سره د همکارۍ هوکړې لاسليک کړې.

د صنعت او سوداګرۍ وزارت د خبر له مخې ، دغه ۱۵موسسې به ۱۶ ولايتونو کې له تشبثاتو د ملاتړ په موخه د ۱۲ميليونه ۴۷۴زره ډالرو په ارزښت پراختيايي او ښوونيزې پروژې پلي کوي.د خبر له مخې دغو پروژو کې کارموندنه، پرمختګ، د غاليو د صنعت وده، د جواهراتو او لاسي صنايعو وده، د کوچنيو او منځنيو صنعتونو پر وړاندې د خنډونو پېژندنه، د کورنيو لنباتو، سبزيجاتو او نورو د اړتيا وړ توکو د پروسس برخه کې اړمنو ته د روزنې او هغوی ته د اړتيا وړ وسايلو برابرول شامل دي.



دغه راز د پستې د بسته بندۍ برخه کې روزنه او مالي سواد، د پستې د اړوندو ماشينونو اخيستل او کوچنيو او منځنيو متشبثيتو ته د سولړې سيستم جوړونه هم د دغو پروژو برخه ده.

د معلوماتو له مخې له دغو پروژو به ۱۶ ولايتونو کې ۷زره ۶۷۳تنه ګټه واخلي.

۲مخ افغانستان؛ د بې ځايه تورونو هدف!

۲مخ روزه ماه مبارک رمضان بر هر مسلمان عاقل و بالغ فرض است

۲مخ تورخم کې د نښتو له امله شاوخوا ۸۰۰ کورنۍ بېځايه شوي

# کونړ کې د ۲ پروژو چارې پيل شوې

د کونړ په منورې ولسوالۍ کې د څه باندې ۴ ميليونه افغانيو په لګښت د يوه سړک او يوه کېبلي پله د جوړولو چارې پيل شوې دي.سرچينې باختر اطلاعاتي آژانس ته ويلي چې د دغه ولايت په منورې ولسوالۍ کې د جاپان هېواد په مالي ملاتړ د ۲.۳ ميليونه افغانيو په لګښت د ۴۵۰ متره په اوږدوالي او ۶ متره سور سره د يوه سړک او د ځايي خلکو په مالي ملاتړ د ۲.۲ ميليونه افغانيو په لګښت د ۱۰۰ متره په اوږدوالي او د ۳ متره په سور سره د يوه کېبلي پله د جوړولو چارې پيل شوې دي.نوموړي زياته کړې، چې په دغو **۳مخ**

# د کندهار د ارغنداب پل بيارغول کېږي

د کندهار د ارغنداب پل بيارغول کېږي. ياد پُل د کندهار د ارغنداب پر سيند موقعيت لري او پرې د ارزګان ترځنګ، د دغه ولايت د شپږو شمالي ولسواليو اوسېدونکي تګ راتګ کوي.د ارغنداب پله يوه برخه د تېرو جګړو له امله ويجاړه شوې وه ،چې تازه يې د اسلامي امارت د مشرتابه د بېړنۍ کمېټې له لوري د ۵.۵ ميليونو افغانيو په ارزښت د رغونې چارې پيل شوې.د يادې کمېټې تخنيکي مسئول شېر حسن خوشيوال وايي: دا پروژه به په ۴۵ ورځو کې بشپړه او لاره به د ټرافيکو پر مخ خلاصه شي.د ياد پله د ويجاړېدو له امله د ارغنداب، خاکرېز، نېش، ميانشين، غورک، ژړۍ او ارزګان ولايت زرګونو اوسېدونکو ته د تګ راتګ په برخه کې ګڼې ستونزې پيدا شوې وې.ځايي خلک وايي چې د ياد پله بيارغونه د سوداګرۍ، کرنې او عامو مسافرو لپاره مهمه او اساسي لاره بلل کيږي ،چې له رغېدو وروسته به د زرګونو خلکو ستونزې حل کړي.

# د افغانستان او ازبيکستان ترمنځ پر سوداګريزو او ريلي اړيکو خبرې وشوې

د ټولګټو وزير ملا محمدعيسي ثاني په کابل کې د ازبيکستان له سفير ايبک عثمانوف سره، د دغه وزارت د تخنيکي او وسپنيزې کربښې د مرستيالانو په شتون کې په خپل کاري دفتر کې ليدنه وکړه او دواړو لورو د افغانستان او اوزبيکستان ترمنځ د اوږد مهاله اقتصادي، سوداګريزو او ريلي اړيکو په اړه خبرې وکړې.په ليدنه کې دواړو لورو د حيرتان-مزارشريف د وسپنيزې کربښې د ترميماتو، د دواړو هېوادونو ترمنځ د سوداګريزو توکو د ليږد راليږد او د بلخ–هرات د وسپنيزې



کربښې د مطالعاتو په اړه هر اړخيزې خبرې وکړې.په پای کې د افغانستان او ازبيکستان ترمنځ د اقتصادي اړيکو، سوداګريزې راکړې ورکړې **۳مخ**

# ترکيه کې ۳۶ افغان کډوال له ډوبېدو ژغورل شوي

د ترکيې ساحلي ګارډ وايي، چې د ښځو او ماشومانو په ګډون يې ۳۶ افغان پناه‌غوښتونکي په يوه کوچنۍ کښتۍ کې د سفر پر مهال له ډوبېدو ژغورلي دي. ترکي رسنيو راپور ورکړی چې دا کښتۍ د ترکيې په شمال کې له «ايواچيک» څخه د يونان «ليسبوس» جزيرې ته روانه وه. د ترکيې د ساحلي ګارډ په وينا، دا پناه‌غوښتونکي له روغتيايي کتنې وروسته د ايستل کېدونکو کډوالو د ساتنې مرکز ته وړل شوي دي.د سرچينې د معلوماتو له مخې ، په دوی کې ۱۷ ماشومان هم شامل وو ،چې په غيرقانوني توګه يې اروپا ته سفر کاوه. بله خوا ترکي رسنيو تازه په «ساکاريا» ښار کې د ۲۰ افغان پناه‌غوښتونکو د نيولو خبر ورکړی دی. **۳مخ**

# د بغلان د بورې فابريکې د برښنا توربين بيا فعال شو

د بغلان د بورې فابريکې مسئولين وايي، چې د دې فابريکې يوه پايه توربين چې تېر ۴۵ کاله هېڅ راز ګټه ترې نه وه پورته شوې له بيارغونې وروسته فعاله او ګټې اخيستنې ته چمتو شوې ده.

د بغلان د بورې فابريکې د برښنا د برخې مسئول محمد يعقوب وايي، چې دغه **۳مخ**






# افغانــستان؛ د بې ځایه تــورونو هــدف!

افغانستان اوس له سرتاسري امنیت او د خپلواک اسلامي نظام له نعمت څخه برخمن دی او ملت یې د خپل مشروع نظام کلک ملاتړ کوي. د افغانستان اسلامي امارت، چې د ملي حاکمیت ساتنې ته ژمن دی، په وار وار دا څرګنده کړې چې د افغانستان خاوره به د هېڅ هېواد پر ضد نه کارول کېږي، خو سره له دې، لا هم ځینې هېوادونه د بې اساسه تورونو له لارې غواړي، چې زموږ هېواد د خپلو کورنیو ناکامیو قرباني کړي.

دا لومړی ځل نه دی چې افغانستان له دغه ډول ناحقو تورونو سره مخ کېږي. په تېرو څو لسیزو کې، د افغانستان د خپلواکۍ، ثبات او ملي حاکمیت پر وړاندې د بېلابېلو نړیوالو لوبغاړو له لوري ناوړه تبلیغات، بې بنسټه تورونه او فشارونه تجربه شوي دي، خو واقعیت دا دی چې افغانستان، د اسلامي اصولو، متقابل احترام او ګاونډیتوب پر بنسټ له ټولو هېوادونو سره مثبت تعامل غواړي.

په دې وروستیو کې یو ځل بیا ځینې لوري هڅه کوي چې د خپلو امنیتي ستونزو، داخلي بې ثباتۍ او کمزوري مدیریت ملامتي پر افغانستان واچوي. دا هغه تګلاره ده چې د نړیوال سیاست په ډګر کې زړه شوې او بې اعتباره شوې ده. د افغانستان اسلامي امارت، چې د خپلو پولو ساتنه د شرعي، ملي او نړیوالو اصولو له مخې ضروري ګڼي او هېڅکله به اجازه ورنه کړي چې خاوره یې د بل چا پر ضد وکارول شي.

د دې پر ځای چې ځینې هېوادونه د افغانستان پر وړاندې د تورونو د لګولو سیاست ته دوام ورکړي، غوره به دا وي چې خپلې کورنۍ ستونزې په خپله حل کړي. د دوې منفي تبلیغات نه یواځې دا چې حقیقت نه بدلوي، بلکې د سیمې سوله‌ییز تعامل ته زیان رسوي.

د افغانستان اسلامي امارت پر دې باور لري چې متقابل احترام، نه مداخله او د مشترکو ګټو پراساس تعامل د سیمې د ثبات یوازینۍ لاره ده. افغانستان د یوې داسې راتلونکې غوښتونکی دی، چې په کې سوله، اقتصادي پرمختګ او متقابل درناوی بنسټیز اصول وي.

له همدې امله، ټولو هغو جهتونو ته چې د افغانستان د ملي حاکمیت پر وړاندې بې بنسټه ادعاوې مطرح کوي، دا پیغام دی چې د تورونو پر ځای، حقیقت ته وګوري، د مثبت تعامل لاره غوره کړي او خپل داخلي مشکلات دې پر نورو ونه تپي، ځکه چې افغانستان نور د فشارونو د منلو په حالت کې نه دی، بلکې د یو خپلواک، عزتمن او اسلامي نظام خاوند دی، چې د خپل ملت د ګټو ساتنه خپله لومړنۍ وجیبه ګڼي.

# عطــش توفنده غربی ها و پیامــدهای آن

**استوار**

طوریکه همه شاهد وگواه خود کامه گی های غرب در راس آن امریکا وناتو استیم رویهمرفته ثبات ونظم جهان را برهم زده و روی اقتصاد جهانی تأثیر منفی گذاشته است. در کنار این روابط اجتماعی ، دیپلوماتیکی و میان کشوری را به نحوی خدشه دار ساخته است .

مطابق به منشور ملل همانگونه که کشور ها حاکمیت استقلالیت خویش را در محدوده منافع علیای جامعه خویش دارند، بایسته است به این حاکمیت و استقلالیت احترام گذاشته شود، که متأسفانه تمرد و دست درازی های متمردانه در امور کشوری دیگران سنگ بنای احترام متقابل و روابط میان کشورها را به نحوی خدشه دار می‌سازد. از سال ۱۹۶۰ م به اینسو باظهور دو ابر قدرت و دوقطبی شدن جهان حلقاتی شکل گرفت که به گونه مرموزانه تقابل وخود محوری ها را در جهان به میان آورد و نادیده نباید گرفت که حتا شورای امنیت سازمان ملل در مقابل خود کامه گی های عطش توفنده آنها کوتاه وعاجز آمد، تا حدی که به رسالت خود نتوانست طور شاید و باید رسیده گی کند .

این یکه تازی ها و حلقه های دور هم آمده به غرض منافع و خواسته های مشروع وغیر مشروع خویش آنقدر پیشروی کردند که خود حق دادند تا در امور کشوری دیگران مداخله های مغرضانه نمایند .در حاشیه چنین عملکرد ها به نحوی از انحا جنگ های نیابتی را در هرگوشه جهان سازمان دهی نمودند، که سبب بدبختی میلیون ها انسان در سطح جهان گردید. وضعیت عراق ، فلسطین ، اوکراین ،سوریه و....

پیامد های نیات شوم ومغرضانه همین حلقات تحت عنوان ناتو و دیگر پیمان ها بوده است.

این عطش توفنده وسرشار از خود کامه گی به حدی خروشان بوده و است که در نهایت امر اکنون سبب فروپاشی وابسته گان خود این پیمان ها وحلقات دور هم جمع شده گردید.

به گونه مثال امروز دیدگاه و نظر امریکا و کشور های غربی در قسمت صلح اوکراین در تناقض بوده و دیدگاه واحد وجود ندارد . و از سوی دیگر همین خود محوری ها نظام اقتصادی را در سطح جهان به گونه ای بحرانی نموده است و در کشورهای غربی امروزه بحران اقتصادی به وجود آمده است.

کشور های اروپایی به کمبود بعضی از مواد ؛چون:

نفت، روغنیات ومواد خوراکی توریدی گرفتار ان، که این خود گواه از هم پاشیده گی وایجاد درز در میان هم پیمانان غربی هاست.

در نهایت چنین برداشت می‌شود که تفستان این عطش توفنده بالاخره دامنگیر خود ایشان گردیده و جهان نیات شوم این قلدران را درک نموده و دیگر به شعبده بازی های ایشان فریب نمی خورند.امید براینست که راغ تظلم ،بیداد وفتنه از هم می پاشد وجهان دوباره نفس آرام خواهد کشید.

**ان شاءالله**

# سیند او سیندیزه حوزه دوه بېلابېل مفاهیم دي

**حیا ت الله حلیم**

افغانستان د نړۍ په داسې جغرافیایي موقعیت کې قرارلري چې د بارانو او واورو اوبه یې د لویو او ځپاندو سیندونو په بڼه پنځو خواوو ته له ملکه وزي او له دې معلومېږي چې د افغانستان خاوره د اوبو د مسیرونو په ارتباط په پنځو لویو حوزو ویشل کېږي. که څه هم د تلفظ په لحاظ سیند اوسیندیزه حوزه سره ورته مفاهیم دي، خو په تشریحي بڼه له یو بل څخه زیات توپیرلري، د موضوع د سم استنباط لپاره له درنو لوستونکو سره د سیند اوسندیزې حوزې د تفکیک په اړه خپل معلومات شریکوو.

دا خوځرګنده ده چې هرلوی سیند د یوې ځانګړې سیندیزې حوزې چې پکې تشکیل شوی دی درلودونکی دی، نوکله چې د یوې سیندیزې حوزې اوبه یوه مشخص مسیر ته را ټولې شي او رویتي بڼه غوره کړي له سیند څخه عبارت ده.

سیندیزه حوزه بیا له هغې پراخې جغرافیا څخه عبارت ده چې له لرې او نږدې نقطوڅخه یې د باران او واورو اوبه یوه مشخص بسترته میلان ولري، د سیندیزې حوزې په نامه یادېږي، هره سیندیزه حوزه په سلګونو لوی اوکوچني سیندونه او خوړونه لري، خوپه انتهی کې یې لکه چې وویل شول چې اوبه یې په یوه مسیرکې د لوی سیند په بڼه را ټولې شي، له یوې سیندیزې حوزې څخه عبارت ده.

که څه هم د کوچنیو تګآبونو، په بڼه په هر ولایت کې کوچنۍ سیندیزې حوزې شته خوپه لویه کچه په افغانستان کې پنځه سیندونه اوپنځه سیندیزې حوزې دیادولو وړ دي.

د کابل سیند: دغه سیند په حقیقت کې د اوني له کوتل څخه نه، بلکې د دوو ښاخونو په بڼه چې یو یې د غزني ولایت د ناهور ولسوالۍ له سیا ریګ څخه او بل یې د دایمیرداد ولسوالۍ اړوند د کجاب له لارې د مرکزي بهسودو د سنګ شاندې له سیمې را پیل کېږي چې دا دواړه بیا د جلګې د شیرتوغي په کلي کې سره یوځای کېږي اود دایمیرداد، چک او سیدآباد له ولسوالیو په تېرېدو د تنګي درې د ( تګاب او نه برجه ) په سیمه کې د لوګرولایت ته وځي اوبیا وروسته د څرخي پله په برخه کې د جلریز، نرخ اومیدان ښاریا په بل عبارت د اوني کوتل اوبه ورسره یو ځای کېږي اود نغلو په ډنډ کې د کابل سیند بڼه نیسي، څو ترتورخم پورې د پنجشیر، جبل سراج ، الیشنګ، الینګار، سرخرود او کونړسیندونه ورسره یوځای کېږي او د یوه لوی سیند په بڼه کوزې پښتونخوا ته وځي.

د کابل سیندیزه حوزه : مهمه ده چې اوس باید وپوهېږو دې سیند ته د کومو ولایتونو او کوموغرونو او کوموسیمو اوبه د لویو اوکوچنیو سیندونو اوخوړونو په بڼه را ټولېږي؟

د لویو سیندونو نومونه واخیستل شول، دغه سیند ته د سیاریګ له لارې د ناهور، او د جغتو له ولسوالۍ پرته چې اوبه یې د ترنک له لارې د هلمند حوزې ته ځي ، د دایمیرداد، بند چک او سیدآباد اوبه په سرچینه کې حسابېږي، په دویم ګام کې د جلریز، نرخ، میدانښار، لوګر، پروان ، پنجشیر، کاپیسا ، ننګرهار، لغمان او کونړ ولایتونواوبه ، په دې سربېره له شیبره رانیولې بیا ترختیځ کونړ پورې د هندکش د لوړو غرونو سهیل پلو ټولې اوبه د غوربند اوشتل د لویو او وړو سیندونو او خوړونو او همدارنګه د پغمان غره د ختیځ لوري ټولې اوبه د کابل سیندیزې حوزې ته را ټولېږي ، د دې سیندیزې حوزې مجموعي مساحت ۷۱۱۰۰ کیلومتره مربع دی او له ملک نه د اوبو وتلو ظرفیت یې ۲۲میلیارده متره مکعبه ثابت شوی دی.

د هلمند سیند: دغه سیند د پغمان غره له لوېدیځ مخ څخه پیل کېږي او د بهسودو د سیاسنګ په دره کې د سیاسنګ سیند ورسره یوځای کېږي اود سهیل لوېدیځ په لور د ملا یعقوب کوتل په لوري حرکت کوي. د دغه سیند په ساحلونوکې د سیستان په سیمه کې ترټولو ډېره کرنیزه ځمکه پرته ده ،خو اوبه یې د کال پنځه میاشتې سیلابي وي اونه مهار کېږي او وروسته بیا کمېږي .

د دغه سیند ۳مخ

# روزه ماه مبارک رمضان بر هر مسلمان عاقل و بالغ فرض است

**عزیزی**

روزه ماه مبارک رمضان یکی از پنج بنای دین مبین اسلام است که بجا کردن آن بر هر مسلمان عاقل و بالغ فرض است. تر جمه :(( ای موؤمنان روزه بر شما فرض گردیده،چنانکه بر مردمان پیش از شما فرض شده بود تا پرهیز گار شوید.)) روزه ماه مبارک رمضان بالای هر مسلمان بالغ فرض است و بر هر مسلمان گرفتن آن حتمی می باشد که در این ماه از بامداد تا شامگاه روزه بگیرد و از خوردنی، نوشیدني و خواهشات دیگر نفسانی پرهیز نماید. خداوند متعال به لطف خویش مارا هدایت می‌کند و به ایمان نور و رحمت خود ما را رهنمایی میکند،هیچ کسی نمی تواند که از فضل و رحمت خداوندی بیرون باشد،بر ما مسلمانان پنج بنای مسلمانی که کلمه طیبه را خواندن،ادای نماز،روزه گرفتن ،زکات مال خویش رادادن و حج کردن است را فرض فرموده است و اکنون که ما در دهه اول ماه مبارک رمضان قرار داریم باید این فرض خداوندی را بجا آوریم و پابند سنت ها و واجبات آن نیز باشیم تا دراین ماه پر فیض از ازمون بزرگ الهی موفقانه بدرآییم.

در ماه مبارک رمضان در حالی که روزه داریم باید گفتار نیک ،اعمال نیک و نیات نیک داشته باشیم و از بدی و منکرات پرهیز کنیم تا روزه ما کامل گردد. ماه رمضان، ماه امتحان است مسلمانان با بجا کردن روزه،سنت ها و واجبات آن در





ماه مبارک رمضان نه تنها امر خدا را بجا می آورند، بلکه با تزکیه نفس و قوت قلب ،توان و اراده خود را می آزمایند.روزه دار با تحمل گرسنگی به فکر گرسنه گان و محتاجان می شود و با کنترول کردن چشم،زبان و دست از گناه و کار های بد و ناپسندیده بمثابه شخص با تقوی و پرهیزگار روزه ماه صیام خود را کامل می‌کند.وقتی مسلمان روزه دار دروغ نمی گوید،گمان بد نمی‌کند به مال مردم چشم نمی دوزد ،رشوه گیری و فریبکاری نمی کند، روزه اش کامل میشود و نزد خداوند مهربان اجر زیاد دارد.مسلمان نباید در حالی که روزه دارد در برابر همنوعان، زیردستان و بزرگان به نیرنگ دست بزند،زیرا باعث ایجاد بدبینی و تفرقه می شود و فریبکاران و رشوت خوران در حالی که روزه دارند و به چنین اعمال ناروا دست میزنند،از یکسو حایز ثوابی که روزه دار باید از آن بهره مند شود، نمیشود، بلکه گناه بزرگ را با این اعمال خود مرتکب می شوند. دین بمثابه محور وحدت در کشورهای اسلامی در گذشته و حال حاضر بوده و این محور وحدت زمانی قوی می باشد که مسلمانان در همه وقت خصوصاً در ماه مبارک رمضان دساتیر دین مقدس اسلام را رعایت کنند ،عبادات و طاعات آنرا با نیت پاک و خاص بخاطر کسب رضای خالق و خوشنودی مخلوق او بجا نمایند و در اجرای ارکان دین که روزه ماه مبارک رمضان یکی از آنها میباشد سستی ننمایند. ارکان دین مقدس اسلام و بجا کردن درست آن نه تنها سبب فلاح و رستگاری مسلمانان در روز رستاخیز است، بلکه قوی ترین وسایل برای تامین وحدت مسلمانان جهت پیشبرد کارهای اجتماعی، سیاسی و فرهنگی به خاطر رسیدن به زندگی بهتر،در این جهان میباشد.

ادای نماز های پنجگانه و تراویح در ماه مبارک رمضان نه تنها فواید اخروی دارد، بلکه منافع اجتماعی زیادی در یک جامعه اسلامی دارد.

همچنان ماه مبارک رمضان امتحان،قناعت، سخاوت،برده باری و میلان به اتحاد و اتفاق مسلمانان است .لذا ماه مبارک رمضان آن ماهی است که تمام مسلمانان از هوا و هوس مادیت بیرون شده ص۳

# تورخم کې د ښنتو له امله شاوخوا ۸۰۰ کورنۍ بېځایه شوي

د سیمې یوشمېر اوسېدونکي وایي: د پاکستان د توغندیزو بریدونو له امله یې کورونو او هټیو ته زیان رسېدلی او دوی کډې کولو ته اړ شوي.د تورخم دروازې له تړل کېدو وروسته، د اسلامي امارت او پاکستاني ځواکونو درې پرله پسې ورځې نښتې کړې ، چې دواړو لورو ته یې زیانونه اړولي.محلي مسئولین وایي: لومړی ځل پاکستاني پوځیانو وروسته له هغه پر افغان لوري بریدونه وکړل ،چې د اسلامي امارت ځواکونه خپل لور ته د تاسیساتو پر جوړولو بوخت وو.د دغو بریدونو په ځواب کې افغان ځواکونو د پاکستان یوشمېر امنیتي پوستې هم له منځه وړې.له لومړۍ نښتې وروسته د دواړو خواوو ترمنځ دوه ځلې نورې هم نښتې شوي دي.د سیمې یوشمېر اوسیدونکي وایي: د پاکستاني پوځیانو د بریدونو له امله یې کورونه او دوکانونه په نښه شوي او دوی ته مالي زیانونه رسېدلي ،چې په دلیل یې د کورونو پرېښودو ته اړ شوي.

په اړه یې روقیل او عبدالحق چې د تورخم سرحدي سیمې د «غوړکي» کلي اوسېدونکي دي، وایي: (( د پاکستان له‌خوا هاوانونه راغلل، نور مو خپل بچې لوڅې پښې او زنانه مو را واخیستل او په خوړونو کې راووتو. د پاکستان له خوا مرمۍ را روانې وې، دا نه معلومیدې ،چې چېرته لګیږي. له هغه ځایه مو دلته پناه راوړله او تاسو ته معلومه ده ،چې په هغې شپه باران هم و، نه مو د ماشومانو کورتۍ وې، نه مو کمپلې درلودلې، بس دلته مو سرپناه راوړې.)) ((له هغه ځایه په ډېر سخت حالت کې راووتلو، ماشومان مو راوویستل، نه څادر او نه کمپله هیڅ هم نه وو، د پاکستان له خوا مرمۍ راتللې او قصداً یې کورونه ویشتل او د هغوی له خوا سخت په عذاب شوو او دلته راغلو.))یوشمېر نورو هغو کورنیو چې د تورخم نښتو کې زیانمنې شوي وویل، پاکستاني پوځیان د اسلامي امارت له ځواکونو سره د مخامخ جګړې توان نه‌لري، نو ځکه وخت ناوخت د ملکي خلکو کورونه او کاروباري ځایونه په نښه کوي.په اړه یې عبدالشکور او نصیب الله وایي: ((غوښتنه مو دا ده چې پاکستان باید دروازه خلاصه کړي او دا یو ښه ګاونډیتوب نه دی چې دغسې حالات یې روان کړي. که هغې خوا ته پښتون دی یا دې خواته پښتون دی، دواړو ته تاوان دی، د روژې میاشت ده، که وچه وي که لمده وي، یو مړۍ ډوډۍ به په خپل کور کې وای.)) (( د پاکستان له خوا ډېر جنګونه دي او همدا مرمۍ دي ، چې په موږ باندې راځي. دا ښه ګاونډیتوب نه دی، د تورخم دواړو خواووته پښتانه دي او موږ سره ډېر ظلم کېږي او دوی هر وخت موږ سره همداسې ظلم کوي.))ورته مهال د ننګرهار محلي مسئولین وایي، تورخم کې د پاکستاني لوري د بریدونو له امله شاوخوا ۸۰۰ کورنۍ بېځایه شوي.

دوی وویل: د جګړې له امله د بېځایه شویو کورنیو سروې یې پیل کړې او په پای ته رسیدو سره به یې، دغو کورنیو ته مرستې ووېشل شي.د ننګرهار د کډوالو چارو رئیس بازمحمد عبدالرحمن او د لالپورې ولسوالۍ د کډوالو کمپ مسئول محمد هاشم میونډوال وایي: ((له تورخم او غوړکي سیمو ۸۰۰ کورنۍ رابېځایه شوي. د مهاجرینو ریاست تر نظارت لاندې د موسساتو سروې روانه ده او په لنډ وخت کې به ورسره ان شاءالله کومکونه وشي.)) (( دا اوس هم ډېرې موسسې راغلي او په سروې اخته دي، ددې لپاره چې له بېځایه شویو کورنیو سره یو څه کومک وکړي ۳مخ

# نقش تربیت خانوادگی در پیشگیری از جرم با رویکرد تربیتی و اجتماعی

عاشق الله مدنی

چکیده: این مقاله به بررسی نقش بی‌بدیل تربیت خانواده در حل و پیشگیری معضل انحرافات و کجروی اجتماعی می‌پردازد. با بهره‌گیری از تحقیقات انجام‌شده توسط محققان و آموزه‌های دینی، نشان داده می‌شود که خانواده یکی از عوامل مهم و تأثیرگذار در پیشگیری از انحرافات اجتماعی است و نقش برجسته و انکارناپذیر دارد. با استفاده از شیوه‌های صحیح و تأییدشده دینی، می‌توان رفتار فرزندان را مطابق با ارزش‌های حاکم شکل داد. اما در صورت سوءتدبیر، سخت‌گیری بیش‌ازحد یا سهل‌انگاری در روش‌های تربیتی، ممکن است راه انحراف و کجروی رفتاری و ناهنجاری اجتماعی توسط فرزندان هموار شود.
اصطلاحات کلیدی: تربیت خانوادگی، پیشگیری از جرم، انحرافات اجتماعی، کنترول اجتماعی.

مقدمه:
جرم‌شناسان خانواده را بر اساس تأثیر اراده فرد در انتخاب آن یا فقدان اراده و عوامل دیگر تقسیم‌بندی کرده‌اند. خانواده نخستین محیطی است که اراده کودک در انتخاب آن تأثیر ندارد. در سال‌های ابتدایی زندگی کودک، خانواده نقش مهمی در شکل‌گیری شخصیت و رفتار وی دارد و به‌عنوان عامل تعیین کننده سرنوشت شناخته‌می‌شود. والدین می‌توانند با تربیت اسلامی، صحیح و پرورش ارزش‌های اخلاقی در کودک، از بروز مشکلات روانی و انحرافات اجتماعی جلوگیری کرده و وی را از ارتکاب جرم بازدارند. پیش از بررسی پیشگیری پولیسی از جرم، باید به اهمیت خانواده پی برد. اگرچه تربیت انسان‌ها بر عهده نهادهای مختلف است، اما خانواده به‌عنوان نهاد اصلی فرزندآوری و فرزندپروری نقش کلیدی در این فرآیند دارد. خانواده جایی است که نخستین تعلقات عاطفی، رفتاری و اجتماعی در آن شکل می‌گیرد و شیوه‌های پذیرش هنجارها و ارزش‌های اجتماعی را آموزش می‌دهد. اگر خانواده نتواند به‌درستی به نیازهای عاطفی، اقتصادی و تربیتی فرزندان پاسخ دهد، احتمال بروز انحرافات و جرایم افزایش می‌یابد. در جامعه کنونی، با گسترش جرایم و آسیب‌های اجتماعی، مسئولیت خانواده‌ها بیشتر از گذشته است و این موضوع اهمیت انتخاب آن را نشان می‌دهد.

تربیت: تربیت انسان، شگفت‌انگیزترین آفریده خداوند بزرگ و والاترین نشانه قدرت بی‌انتهای اوست. انسان مستعد برخورداری از تمامی صفات و کمالات الهی است. او را خلق کرده‌اند تا به مقام قرب الهی و جانشینی خداوند در زمین برسد و این سیر جز با تربیت صحیح محقق نخواهد شد. حقیقت انسان، ملکوتی است که با طی مراتب قوس نزولی، در این عالم خاکی سکنی گزیده است و تنها از طریق تربیت می‌توان به آن حقیقت مقدس دست یافت. پیام‌آوران الهی آمده‌اند تا زمینه‌های این تحول بزرگ را در وجود انسان فراهم کرده و او را از برهوت ظلمانی به نور هدایت رهنمون سازند. تردیدی نیست که اگر انسان بر اساس معیارهای الهی تربیت نشود، در همان مرتبه حیوانیت باقی خواهد ماند. قرآن کریم و سنت بهترین راه تربیت را که مبتنی بر شناخت حقیقت انسان و نیازهای اوست، ارائه می کنند. تعریف لغوی و اصطلاحی تربیت: این اصطلاح در لغت‌نامه دهخدا به معنی آموختن، آگاهانیدن، کسی را چیزی آموختن، آموزاندن و... آمده است. تربیت در لغت به معنای پرورش دادن است که در آن نمو و افزایش ملاحظه شده است. راغب می گوید: «ربّ» در اصل به معنای تربیت است و این اصطلاح به طور مطلق فقط بر خداوند اطلاق می‌شود، که متکفل اصلاح موجودات است. تعریف لغوی و اصطلاحی خانواده: خانواده یک واحد زیستی است که بر اساس پیوند زناشویی شکل می گیرد و افراد آن از طریق رابطه سببی یا نسبی به یکدیگر خویشاوند هستند. خانواده گروهی است متشکل از افرادی که از طریق ازدواج، همخونی یا پذیرش فرزند به یکدیگر متصل شده و روابط مانند شوهر، زن، مادر، پدر، برادر و خواهر دارند. این افراد در یک واحد خاص زندگی کرده و فرهنگ مشترکی را به‌وجود می‌آورند. خانواده یکی از عمومی‌ترین سازمان‌های اجتماعی است که بر اساس ازدواج بین دو جنس مخالف شکل می گیرد و در آن مناسبات خونی یا اسناد یافته مشاهده می‌شود. تعریف لغوی و اصطلاحی پیشگیری: پیشگیری در لغت به معنای دفع، جلوگیری و نهی از ارتکاب یک عمل است. در اصطلاح، پیشگیری مجموعه‌ای از اقدامات و تدابیر غیرقهرآمیز است که با هدف مهار جرم، کاهش احتمال وقوع آن، کاهش شدت و پیامدهای جرم و مقابله با علل آن اتخاذ می‌شود. تعریف جرم از لحاظ شریعت: الله، می‌فرماید: «قطعاً گناهکاران در گمراهی و جنون هستند». در قرآن کریم بسیاری از آیات به این موضوع اشاره و تأکید دارند، مانند آیه ۸ سوره المائده: «ای کسانی که ایمان آورده‌اید، برای خدا به داد برخیزید و به عدالت شهادت دهید». در شریعت، جرم به محظورات (ممنوعات) شرعی اطلاق می‌شود، که شامل انجام فعل حرام یا ترک فعل واجب است. جرم تنها زمانی محقق می‌شود که شریعت آن را منع کرده و برای آن مجازات تعیین کرده باشد. بنابراین، هیچ فعل یا ترک فعل جرم محسوب نمی‌شود مگر اینکه برای آن عقوبت مشخصی در نظر گرفته شده باشد. فقهاء به مجازات‌ها «جزای» تعبیر می کنند. پیشگیری از ارتکاب جرایم: پیشگیری از جرم، که مؤثرترین و بهترین راه مبارزه با رفتارهای کج‌روانه و ناهنجاری‌های اجتماعی است، جایگاه ویژه‌ای در سیاست جنایی کشورهای مختلف دارد.

از دیدگاه علمی، جلوگیری از بروز هرگونه مفسده اجتماعی و فردی، بهترین روش مبارزه با آن به شمار می‌آید. این رویکرد از نظر اقتصادی نیز به‌صرفه است، زیرا نیروی انسانی و زمان زیادی در مسیر مبارزه با جرایم هدر نمی‌رود. اهمیت و لزوم بررسی این موضوع از دیدگاه قرآن، معتبرترین منبع دینی ما، بر کسی پوشیده نیست، چرا که این کتاب آسمانی راهکارها و رهنمودهای ارزشمندی برای مقابله با بزرگترین معضل اجتماعی انسان‌ها در طول تاریخ ارائه داده است. عوامل ناتوانی خانواده‌ها در پیشگیری از جرایم: از هم گسیختگی خانواده‌ها، به‌ویژه در اثر جدایی و طلاق، مشکلات زیادی برای جامعه به همراه دارد. با متلاشی شدن خانواده، گناه کاری در بسیاری از موارد آغاز می‌شود، زیرا خانواده عاملی مؤثر در جلوگیری از گناه کاری است. جدایی والدین موجب اضطراب و نگرانی فرزندان می‌شود و آنها نمی‌توانند به‌طور دقیق مشخص کنند که به کدام یک از والدین بیشتر وابسته‌اند. محرومیت از دیدار والدین باعث احساس فقدان دردناکی در کودکان می‌شود که این احساسات به مشکلات روانی، عصبی، بدخلقی، تمرد از دستورات والدین و دیگران و نهایتاً ناسازگاری اجتماعی منجر می‌شود. اثر طلاق بر فرزندان بسیار شدید است و ممکن است باعث بروز عقده‌های روانی و نفرت شود. طلاق یکی از عوامل قوی افزایش گناه کاری است و میزان طلاق به‌عنوان معیاری برای سنجش تزلزل اجتماعی مطرح است. پیشگیری از طلاق به عواملی بستگی دارد که احتمال وقوع آن را کاهش می‌دهند. عوامل اجتماعی در پیشگیری از جرم: موقعیت‌های اجتماعی در پنج دسته اساسی قرار ذیل است: الف. همنوایی: زمانی رخ می‌دهد که افراد اهداف فرهنگی موفقیت مادی و ابزارهای قانونی برای رسیدن به این اهداف را می‌پذیرند. این نوع رفتار موجب ثبات اجتماعی می‌شود. ب. نوآوری: در این حالت، افراد اهداف فرهنگی موفقیت را می‌پذیرند، اما ابزارهای قانونی را رد می‌کنند. این افراد ممکن است به جرم‌هایی مانند فحشا، قاچاق مواد مخدر، فریب کاری و دزدی روی بیاورند. ج. شعائرگرایی: در این وضعیت، افراد اهداف عالی موفقیت را رها کرده و صرفاً از ابزارهای تأییدشده پیروی می‌کنند، بدون توجه به اهداف اصلی. د. انزواطلبی:
این افراد هم اهداف فرهنگی و هم ابزارهای قانونی را قبول دارند، اما بدون جایگزینی شیوه‌های جدید در جامعه باقی می‌مانند، مانند معتادان یا ولگردان. ه. شورش: شورشیان اهداف و ابزارهای قانونی را رد کرده و برای دستیابی به اهداف جدید از شیوه‌های جدید استفاده می کنند. این گروه‌ها معمولاً به جنبش‌های اجتماعی رادیکال می‌پیوندند. مرتون معتقد است که فشار اجتماعی و تأکید بیش از حد بر اهداف فرهنگی ممکن است منجر به انحراف شود. فرد برای دستیابی به موفقیت ممکن است از روش‌های متعارف فاصله بگیرد. همچنین مرتون بیان می‌کند که فردگرایی مفرط می‌تواند باعث تضعیف قوانین اجتماعی و افزایش تمایل به انحراف شود. این نظریه بر اساس برچسب‌هایی است که جامعه به افراد می‌زند.

این برچسب‌ها نه تنها بر اساس رفتار فرد، بلکه بر اساس قضاوت اجتماعی شکل می گیرند. به عنوان مثال، برخی افراد به‌دلیل مشکلات خانوادگی ممکن است به‌طور غلط به عنوان گناهکار شناخته شوند، که این موجب تقویت رفتارهای انحرافی آنان می‌شود.

این نظریه تأکید دارد که انحراف اولیه به رفتارهایی اطلاق می‌شود که از نظر جامعه ناهنجار نیستند، اما پس از برچسب‌زنی، فرد به انحرافات بزرگتری کشیده‌می‌شود. کمبود محبت در خانواده: دوستی و تفاهم پدر و مادر به آسایش خاطر و اطمینان کودک و نوجوان کمک می کند و باعث می‌شود آنها دوران طفولیت و نوجوانی خود را به‌طور مطلوب سپری کنند. در صورت وجود مشکلات در روابط پدر و مادر، باید این مسائل از فرزندان پنهان بماند و هیچ کدام به انتقاد از طرف مقابل نپردازند.

روابط خانوادگی باید بر اساس گذشت و سازش باشد تا صمیمیت و ارتباطات مثبت حفظ شود. خانه‌ای که از محبت و انسجام خالی است، می‌تواند موجب بروز مشکلات روانی و رفتاری در نوجوانان شود.

### سیند او سیندیزه...

د سیندیزې حوزې مجموعي مساحت ۲۱۸۶۰۰ کیلومتره مربع ته رسېږي او له ملک څخه د وتلو ظرفیت یې ۶/۵ میلیارده متره مکعبو اوبو ته رسېږي. دې سیندیزې حوزې ته د بامیانو د یو شمېر ولسوالیو، غزني، ارغنداب، زابل، ارغستان او په مجموع کې د ترنک حوزې اوبه ورتویږي. د آموسیند: دغه سیند د هېواد په شمال کې د زرقول له جهیله د پنج سیند په نوم را پیل کېږي او کله چې د کندز له سیند سره د همدې ولایت د قلعه زال په ولسوالۍ کې یو ځای شي نو بیا د آمو سیند نوم خپلوي، وروسته د جوزجان ولایت د خمیاب په سیمه کې له افغانستانه دترکمنستان په لور وځي، دغه سیند د سواحلو د وړلو له پلوه له ټولو بدغونې سیند دی، ځکه همدا سیند دی چې په تیرو کلونو کې به یې هرکال خپل په زرګونو جریبه سواحل په مخه کول او د افغانستان په خاوره کې یې ځان ته د بهیدلو بستر جوړاوه، همدا وجه ده چې د افغانستان پولې د بدخشان تخار، کندز، مزارشریف او شبرغان په ولایاتو کې د اړې دغاښونو په شان تیرې بیرې وې، ځکه دغه سیند په هر ځای کې یې چې زور رسیدلی و، داسې بې دریغه بیدیایې یې اړولې چې آن د هېواد نقشې ته یې بدلون هم ورکړی، دا خولا پر ځای، چې په تخار ولایت کې یې د درقد ولسوالۍ د سیند پورې غاړه پورې ایستلې ده. له نیکه مرغه چې اوس د اسلامي امارت په نوښت د دغه سیند د سواحلو لپاره لازم تدابیر نیول شوي. همدارنګه د قوشتیپې لوی کانال هم ترې را ګرځول شوی دی. آموسیندیزه حوزه: دا حوزه د کندز او کوکچې د سیندیزې حوزې په نوم هم یادېږي ۹۲۳۰۰ کیلومتره مربع مساحت لري او له ملک نه د اوبو د وتلو ظرفیت یې ۲۰ میلیارده متره مکعبه تخمین شوی دی. مرغاب سیند: دغه سیند د سفید کوه (فیروزکوه) اود تیربند ترکستان د شمال لوېدیځ له لوړو، ژورو څخه سرچینه اخلي او ۸۰۰ کیلومتره اوږدوالی لري چې ۴۵۰ کیلومتره د افغانستان او ۳۵۰ کیلومتره د ترکمنستان په خاوره کې بهېږي یاد سیند د افغانستان او ترکمنستان ترمنځ تقریباً ۴۵ کیلومتره ګډه پوله هم جوړوي او سرانجام د مروې په ریګستانونو کې جذبېږي. د مرغاب سیندیزه حوزه: دا حوزه د سمت شمال د سیندیزې حوزې په نامه هم یادېږي او آبګیره ساحه یې ۱۱۵۴۰۰ کیلومتره مربع مساحت لري چې شرین تګاب، سرپل، بلخ او خلم پکې شامل دي او له ملک نه د اوبو د وتلو ظرفیت یې ۳ میلیارده متره مکعبه اوبه دي. د هریرود سیند: دغه سیند د بابا غرونو له لوېدیځ څخه سرچینه اخلي، په هرات کې د سلما بند د دغه سیند لپاسه جوړ شوی دی، له افغانستان څخه د وتلو پرمهال لومړی ایران او وروسته بیا ترکمنستان ته ننوځي، هریرود له اسلام قلعه څخه تر ذوالفقارپورې د افغانستان او ایران ترمنځ طبیعي پوله جوړوي وروسته د قراقروم په دښته کې پای ته رسېږي. د هریرود سیندیزه حوزه: د دې سیندیزې حوزې د اوبو اخیستلو سرچینې ۷۷۶۰۴ کیلو متره مربع ته رسېږي، دغه سیند د افغانستان لوېدیځه او شمال لوېدیځه جغرافیا احتوای کوي.

### تورخم کې د ښتو...

او دا لومړنۍ آسانتیاوې مور ورته برابروو.))د یادوني وړ ده چې پاکستاني لوري له تېرو څو ورځو راهیسې د تورخم دروازه د هر ډول تګ راتګ پر وړاندې تړلې او د ډېورنډ فرضي کرښې دواړو لوریو ته سلګونه مسافر، زرګونه بار وړونکي موټر او بېړني ناروغان بند پاتې دي.

### روزه ماه مبارک...

از طریق طاعت و عبادت سالم قلب های آگنده از شرارت خویش را تزکیه می نمایند، بدون تزکیه نفس هیچ یکی از مشکل های جامعه بشری اسلامی بر طرف نمیگردد هر آنچه بدبختی و مصایبی که بالای امت مسلمه امروز وجود دارد دلیل و انگیزه آن خراب شدن نفس و عدم ادای اوامر و دساتیر الهی بوده. بایستی هر بنده مسلمان به اصلاح نفس و اخلاق خود شروع نماید و به فضیلت این ماه متبرک صلح سرتاسری، فراوانی، ارزانی، رفاه و سعادت دارین را نصیب ما و همه مسلمانان جهان نماید.

### راتلونکي کال...

د افغانستان د حاجیانو لپاره د هېواد دننه او په سعودي عربستان کې، د لازمو آسانتیاوو برابرولو د سهمیې مطابق حرمینو شریفینو ته د حاجیانو د لېږد او رالېږد په موخه په داخل او خارج کې پر وخت لازم، ګټور او پرله پسې اقدامات او فعالیتونه ترسره کړي چې له مخې یې راکړل شوې سهمیه په شفاف او عادلانه توګه په ټول هېواد کې د حج پر متقاضیانو ویشل شوې ده، نوې نوملیکنه په ټول هېواد کې په بریالیتوب ترسره شوې ده او بیا د قُرعه کشۍ له لارې کامیاب حاجیان معلوم شوي دي او د لګښت جدول یې نهایي شوي دي. د ثاقب په وینا: د حج سهمیه د عامو حاجیانو ترڅنګ، مجاهدینو، امارتي اداراتو، د شهیدانو وارثانو، معلولینو او په ایران، پاکستان او نورو هېوادونو کې د مهاجرینو لپاره هم په جلا جلا توګه مشخصه شوې، د حجاج کرامو د لارښوونې او هغوی ته د حج د مناسکو د تعلیم او زده کړې ورکولو په موخه د حاجیانو د معلمینو د ټاکلو په خاطر، مرکز او ټولو ولایتونو ته د وزارت له لوري با صلاحیته پلاوي ولېږل شول، چې د اړوندو ولایتونو له علماء کرامو څخه یې د معلمۍ آزموینې واخیستلې، په آزموینو کې بریالي کسان به له حاجیانو سره د معلمینو په توګه حرمینو شریفینو ته ولېږل شي. همداشان د افغانستان د حاجیانو لپاره د حنفي مذهب مطابق د حج لارښود کتاب چې آسان، مختصر، مُدلّل، مُحقّق او هر اړخیز دي او د حج اړوند مهم اصطلاحات او د مبارکو ځایونو پېژندنه پکې شوې ده، په پښتو او دري ژبو بیا چاپ شوي، سعودي عربستان ته د ارشاد، حج او اوقافو وزارت له خوا د لېږل شوې هیئت له لوري د حاجیانو لپاره د هستوګنځایونو، تغذیې، ټرانسپورټ او نورو برخو کې اړین قراردادونه پر وخت او لا له وړاندې ترسره شوي دي. د نوموړي په خبره: په مکه مکرمه کې د ټولو حاجیانو لپاره حرم شریف ته نږدې په درېوو مهمو او مناسبو ساحو کې تعمیرونه نیول شوي دي. همدارنګه په مدینه منوره کې په مرکزي سیمو او ورسره په نږدې سیمو کې د تعمیرونو پر قراردادونو سربېره، د تېرو دوو کلونو په څېر د حاجیانو د غوښتنې او ضرورت له مخې د درې وخته ډوډۍ ښه انتظام برابر شوي دي. د ارشاد، حج او اوقافو وزارت تل هڅه کړې چې د حاجیانو اقتصادي وضعیت ته په کتو، په کمو او مناسبو لګښتونو د حاجیانو لپاره لازمي آسانتیاوې او سهولتونه رامنځته کړي او د دغه وزارت مسؤلین د حاجیانو خدمت خپله دیني وجیبه بولي او د ترسره کولو لپاره یې ښه په اخلاص عملي ګامونه پورته کوي چې په همدې اساس له ډېر دقت وروسته له اضافي مصارفو څخه په مخنیوي سره سږ کال د یو تن حاجي لګښت (۲۸۲۰۹۰) افغانۍ دي او د ټولې پروسې لګښت اته میلیارده او نږدې درې سوه میلیونه افغانۍ کېږي. د یادولو وړ ده چې سږ کال به د حج ټول لګښت په افغانیو وي. زیارمل هوتک

### جاپان له افغانستان...

د شارژدافیر له قوله ویل شوي، چې هغه د افغانستان د روغتیا په برخه کې د خپل هېواد د دوامداره همکارۍ ډاډ ورکړی دی. دا په داسې حال کې ده، چې د روغتیا نړیوال سازمان په دې وروستیو کې د جاپان د ۵۰۰ زره ډالرو مرستې اعلان وکړ، ترڅو په افغانستان کې زیانمنونکو افغانانو ته روغتیایي خدمات وړاندې کړي. د سازمان په اعلامیه کې ویل شوي، چې دا اداره به د جاپان په ملاتړ د روان کال د مارچ له میاشتې څخه د روغتیا یې پاملرنې خدمتونو د وړاندې کولو لپاره د ۱۲ میاشتو پروژه پیل کړي. د روغتیا نړیوال سازمان هم ټینګار وکړ، چې دا مرسته به زیانمنونکو افغانانو ته د روغتیایي خدمتونو د وړاندې کولو لپاره ځانګړې شي. په افغانستان کې د جاپان سفیر، کوروميا تاکایوشي هم تبصره وکړه، چې دا مرسته له ننګونو سره د مبارزې او لومړنیو روغتیایي خدمتونو او پاملرنې ته د لاسرسي په برخه کې د افغانانو د ملاتړ لپاره چمتو شوې ده. جاپان له دې وړاندې هم په افغانستان کې د بشري مرستو، روغتیایي ننګونو ته د حللارې او د پراختیایي پروژو د ملاتړ لپاره د میلیونونو ډالرو مرستې اعلان کړي و.

### کونړ کې د ۲ پروژو...

پروژو کې د سیمې لسګونو کسانو ته د کار زمینه هم برابره شوې، چې چارې به یې نږدې راتلونکي کې بشپړې شي. ورته مهال د سیمې اوسېدونکي د یادو پروژو په پلي کېدو خوښي ښودلې او وایي، چي د دغو پروژو په پلي کېدو سره به ورته د تګ راتګ په برخه کې شته ستونزې حل شي.

### د افغانستان او ازبیکستان...

او وسپنې پټلۍ د رغولو، ترمیم او معیاري کولو په برخه کې په هر اړخیزې همکارۍ ټینګار وشو.

### ترکیه کې ۳۶ افغان...

د ویلو وړ ده، چې په وروستیو کې په ترکیه، پاکستان او ایران کې د افغان کډوالو نیول په کمساري توګه زیات شوي دي. په وروستیو کې د ترکیې د احصایې انستیټیوټ ویلي، چې افغانان له عراقیانو وروسته په یاد هیواد کې دویم لوی بهرني نفوس جوړوي، چې شمیر یې ۱۳۹ زره ۲۵۱ کسانو ته رسېږي. په ورته وخت کې د ترکیې، ایران او پاکستان حکومتونو ویلي، چې دوی به نور په خپله خاوره کې هېڅ غیرقانوني افغان کډوال ته د استوګنې اجازه ورنکړي.

### د بغلان د بورې فابریکې...

توربین له منتاژ کېدو وروسته تېر ۴۵ کاله نه و فعال شوي او هېڅ راز ګټه هم ترې نه وه پورته شوې، چې اوس د بغلان د بورې فابریکې او د سپین زر شرکت د فني کارکوونکو په ګډې همکارۍ سره بېرته فعال او ګټې اخیستنې ته چمتو شوی دی. یعقوب زیاته کړه چې دغه توربین د یو میګاواټ برښنا د تولید وړتیا لري چې په بخار چلېږي. د یادونې وړ ده، چې د دې توربین په فعالېدو سره اړتیا نشته څو د بغلان د بورې فابریکه په ماشیني برښنا باندې په ۲۴ ساعتونو کې ۱۰۰۰ لیټره تېل مصرف کړي. باختر

### سږکال مو ۱۲۹ کورنیو...

نادولتي موسسې او ۱۲۹ کورني نادولتي موسسې ثبت کړې او د فعالیت جوازونه ورکړل شوي دي. دوی د کرنې، پوهنې، د ناورین مدیریت، ټولنیز خوندیتوب او ځینو نورو برخو کې کار کوي.))د اقتصاد وزارت د شمېرو له مخې، دغه وزارت سره ۲زره او ۶۰۸ کورنۍ او بهرنۍ موسسې ثبت دي.

### له ازبیکستان څخه افغانستان...

مننه کړې او ویلي یې دي، چې موږ د دې پروژې د پلي کېدو لپاره ژمن یو او کوښښ مو دا دی، چې دغه دوه اړخیزې اړیکې لا پیاوړې او زیاتې شي. غونډه د لا زیاتې همکارۍ په ټینګار سره پای ته ورسېده.




**موضوع: نشر اعلان ساحه معدن کاری سرب (پولی میتال) به مقیاس کوچک**

وزارت معادن و پترولیم قرارداد یک پروژه معدنکاری مقیاس کوچک سرب (پولی میتال) ساحه خواجه غار قریه جرچقر حاجی عبدالرحیم ولسوالی مرکز ولایت غور را که مشخصات آن ضم جدول میباشد، غرض جلب علاقه مندان به اعلان میسپارد.
علاقه مندان اعتبار از تاریخ ۱٤۰۳/۱۲/۱٤ الی ۱٤۰٤/۰۱/۱۳ درخواست های شان را به ریاست عمومی کادستر و تنظیم منرالها تسلیم نموده و اسناد لازم را بعد از تحویلی مبلغ ۳۷۵۰۰ افغانی که پول غیر قابل برگشت میباشد، بدست آورده میتوانند.

جدول مشخصات پروژه سرب ( پولی میتال ) ساحه معدنکاری به مقیاس کوچک

آغاز اعلان: ۱٤۰۳/۱۲/۱٤ ختم اعلان: ۱٤۰٤/۱/۱۳

| شماره | ولایت | ولسوالی | نامه ساحه | نوع مواد معدنی | مساحت به (km2) | کوردینات N-Latitude S | N-Latitude M | N-Latitude D | E- Longitude S | E- Longitude M | E- Longitude D |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 1 | غور | مرکز | خواجه غار قریه جر چقر حاجی عبدالرحیم | سرب (پولی میتال) | 0.714636 | 20.260 | 42 | 34 | 20.833 | 5 | 65 |
| | | | | | | 15.260 | 42 | 34 | 47.160 | 5 | 65 |
| | | | | | | 39.270 | 41 | 34 | 41.880 | 5 | 65 |
| | | | | | | 42.250 | 41 | 34 | 18.903 | 5 | 65 |
| | | | | | | 0.260 | 42 | 34 | 18.653 | 5 | 65 |

منظور کننده: ریاست عمومی کادستر و تنظیم منرالها ترتیب کننده: ریاست تنظیم قراردادهای معادن کوچک

### اطلاعیه لیلام

وزارت شهداومعلولین در نظر دارد تا سه عراده وسایط نقلیه غیر فعال مازاد وغیر ضرورت خویش را به تاریخ ۱۴۰۳/۱۲/۲۲ به طور لیلام به فروش برساند بنا دوایر دولتی موسسات داخلی و خارجی شرکت ها واشخاص انفرادی که خواهش خریداری آنرا داشته باشند می توانند در تاریخ فوق الذکر به مقر وزارت امور شهداء ومعلولین واقع استگاه قلعه خیاط سرک عمومی میدان هوایی مراجعه نمایند پول تضمین پانزده فیصد قبل از شروع داوطلبی نقدا اخذ میگردد.۹۶۶۶

### اطلاعیه به کرایه دهی

شرکت دولتی فارمسی ابن سینا تعمیر دواخانه شماره (۳۱) خویش را واقع مسجد سرور کائنات مقابل ناحیه پانزدهم شهر کابل موقعیت دارد در روشنی قوانین نافذه کشور طور مزایده به کرایه میدهد. چون قبلا مجلس آفرگشایی مبلغ (۱۵۰۰۰) افغانی شخص بنام الله جان فرزند محمد جان ارائیه نموده است . اشخاص و افراد حکمی و حقیقی که خواهش ارائیه نرخ بلند تر از قیمت متذکره را داشته باشند ، شرطنامه متذکره را از مدیریت مکلیت های مدیریت عمومی خدمات شرکت امارتی فارمسی ابن سینا دربدل ۱۰۰۰ افغانی پول غیر قابل بازگشت دریافت نموده جلسه آفرگشایی ۷ یوم بعد از نشر اخبار به روز معینه ساعت ۱۰:۰۰ بجه قبل از ظهر در مقر شرکت امارتی فارمسی ابن سینا برگذار میگردد. تضمین طبق مقررات اخذ میگردد.۷۶۶۱

### اطلاعیه تقرری

قرار است محترم محمد نصیر فرزند سیلوس دارنده تذکره شماره ( ۳۴۷۸۸۷۶۸ ) مسکونه فعلی ناحیه در مربوطات شاروالی کابل بحیث دریور تقرر حاصل نماید نامبرده اگر به دوایر و موسسات مسوولیت داشته باشد الی مدت یک هفته به ریاست مالی و اداری شاروالی کابل مراجعه نموده در غیر آن حق شکایت را نخواهند داشت.۹۶۵۹

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ترجمه انگلیسی تذکره تابعیت به اسم خواجه کفایت الله فرزند خواجه محمد اسحق مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۵۸

### کوربه هیوادونه...

چلند وکړي» مولوي عبدالکبیر زیاته کړې، چې اسلامي امارت افغان کډوال هېواد ته راستنېدو ته هڅوي، خو په کور دننه د شرایطو د نه برابرېدو له امله باید کوربه هېوادونه د جبري اېستلو پر ځای د یو منظم او تدریجي میکانیزم له مخې عمل وکړي. نوموړي ټینګار کړی، چې د جون تر پایه له پاکستان څخه د ټولو افغان کډوالو ایستل ستونزمن دي، ځکه هغوی نشي کولی خپل ټول ژوند او شتمنۍ په دومره لنډ وخت کې راټولې کړي. هغه له کوربه هېوادونو څخه غوښتي، چې د ګډو میکانیزمونو په اساس دې افغان کډوالو ته وخت ورکړل شي چې په دې برخه کې دوه اړخیزې او درې اړخیزې ناستې اړینې دي. د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت سرپرست زیاته کړې، چې « د دواړو هېوادونو تر منځ د جزیي ستونزو لپاره دې د خبرو لاره غوره شي، د تورخم بندول، جګړه او تاوتریخوالي یې حل لاره نه ده، په تورخم کې دې له تخریبي عمله ډډه وشي، د تورخم دواړو غاړو ته زرګونه مسافر، ناروغان، جنازې او د سوداګرو مالونه بند پاتې دي، نو په دې اړه دې جدي اقدام وشي څو دواړو لورو ته ډېر زیان ونه رسېږي.» په ورته وخت کې، په کابل کې د پاکستان سفیر په دغې کتنه کې ډاډ ورکړي، چې د اسلامي امارت غوښتنې به په رسمي ډول له پاکستاني چارواکو سره شریکې کړي. ده د پاکستان راتلونکي له افغانستان سره تړلې بللي او ویلي یې دي، چې له همدې امله افغان کډوالو څخه د سیاسي ابزارو په توګه ګټه نه اخلي، بلکې غواړي چې ستونزې د تفاهم له لارې حل شي. همدارنګه په کابل کې د ایران سفیر علیرضا بیګدلي ویلي چې د ایران حکومت له قانوني کډوالو سره د همکارۍ هڅې کوي، خو د ناقانونه کډوالو ستونزې ته باید دایمي حللارې پیدا شي. نوموړي زیاته کړې، چې د افغانستان او ایران ښو اړیکو ته په کتو، اړینه ده چې دواړه هېوادونه په ګډه د افغان کډوالو د ستونزو د حل لپاره لازم اقدامات وکړي. هغه ویلي: (موږ غواړو چې په ایران کې مېشتو ناقانونه کډوالو ته د اړتیا وړ قانوني اسناد ورکړل شي».

### هرات کې د ۳۶ ښوونځیو...

ښاغلي جابر زیاته کړې چې د دغه ولایت اوسېدونکو لسګونه ښوونځیو ته ځمکه وقف کړې او په راتلونکي کال کې به ۳۸ نورو ښوونځیو ته ودانۍ جوړې شي. د هرات اوسېدونکي بیا له یادو پروژو خوښي څرګندوي او له ځایي مسئولینو د پوهنې په برخه کې د لاډېرو اسانتیاوو د برابرولو غوښتنه کوي.

Hewad Daily

شنبه د رمضان المبارک ۸ مه ـ ۱٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د کب ۱۸ مه د 2025 م کال د مارچ ۸ مه

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: س ۲۵۲۶۳٤۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع ځانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰٤٤۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

## د اقتصاد وزارت:

# سږکال مو ۱۲۹ کورنيو او ۵ بهرنيو موسسو ته د فعالیت جوازونه ورکړي




د اقتصاد وزارت مسئولین وايي: دغه وزارت د روان لمريز کال له پيل راهيسې ۱۲۹ کورنيو او ۵ بهرنيو موسسو ته تازه د فعاليت جوازونه صادر کړي دي.د دې وزارت وياند عبدالرحمان حبيب رسنيو ته ويلي، دغه موسسې خپلې پروژې د کرنې، ښوونې او روزنې، له طبيعي پېښو سره د مبارزې او د افغانستان نورو برخو کې تطبيقوي.ده زياته کړه، چې د دغو موسسو فعاليت لنډمهال کې هېواد کې د بېوزلۍ کچې راکمولو کې مهم رول لرلی شي.نوموړي ويلي: (( سږکال موږ ۵ بهرنۍ ۳مخ

## هرات کې د ۳۶ ښوونځیو او دیني مدرسو ودانۍ بیارغول شوي

د هرات د پوهنې رياست مسئولينو د دې ولايت په کچه د ۳۶ ښوونځيو او ديني مدرسو د ودانيو د بيارغولو الله جابر باختر آژانس ته ويلي چې ياد شمېر ښوونځي او ديني مدرسې د پوهنې وزارت په مالي ملاتړ د ۲۲ ميليونه ۶۰۰



خبر ورکړی دی.د هرات د پوهنې رئيس مولوي رحمت زره افغانيو په لګښت ترميم او بيا رغول شوې دي. ۳مخ

## له ازبیکستان څخه افغانستان ته د ۵۰۰ کیلوولټه برښنا د رالېږدولو په اړه خبرې وشوې

د افغانستان برښنا شرکت د عمومي اجرائيوي رئيس ډاکتر عبدالباري عمر په مشرې د اړوندې پروژې مسئولينو همداراز د ازبيکستان د انرژي له مسئول سره د ويډيو کنفرانس له لارې له ياد هېواد څخه افغانستان ته د لېږدوونکې ۵۰۰ کيلوولټه برښنا د لېږد مزي پروژې په اړه هر اړخيزې خبرې وکړې.

ښاغلي عمر په پيل کې د دې پروژې ارزښت د دواړو هېوادونو لپاره مهم بللي او ويلي يې دي؛ خوښ يو چې تاسې د دې پروژې په اړه د پانګونې لپاره لېوالتيا لرئ. زموږ



لپاره هم دا ډېره مهمه ده چې خپلو هېوادوالو ته د برښنا رسونې بهير لا چټک کړو.نوموړي زياته کړې، چې د يادې پروژې په اړه به خپلې غوښتنې درسره شريکې کړو، تر څو د دې پروژې په اړه د لا زيات بحث او د چارو د پيل په موخه ګډ پلاوي وروستۍ ناستې وکړي.بلـه خـوا د ازبيکستان هېواد د انرژي مسئولينو د برښنا شرکت له رهبرۍ څخه د هر اړخيزې همکارۍ ۳مخ

## فراه کې د شنوخونو پر جوړولو نږدې یو میلیارد افغانۍ پانګونه شوې

د فراه د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رياست متخصص توريالي نوري وايي، چې دغه ولايت کې پر ۲ ميليونو او ۶۸۵ زره او ۴۵۸ متره مربع ځمکه شنې خونې جوړې شوي.ده وويل، هر فصل کې هر زر متره مربع شنوخونو کې ۱۴ ټنه محصول توليديږي.د ده په وينا: د کرنې رياست او د همکارو موسسو په همکارۍ د خصوصي سکتور له لارې د شنوخونو جوړولو په برخه کې ۹۹۳.۶ ميليونه ډالره پانګونه شوې ده.د فراه له شنوخونو، کدو، بادرنګ، رومي بانجان او تور بانجان يوشمېر ولايتونو او عراق هېواد ته هم صادريږي،خو د فراه د کرنې رياست مسئولين ټينګار کوي چې تېرو څو ورځو کې د بارانونو، طوفان او ږلۍ له امله، د دغه ولايت په مرکز او ولسواليو کې ۱۰۲ زره متره مربع شنې خونې او ۲۲۱۳ جريبه تر کښت لاندې ځمکه ويجاړه شوې ده.د يادونې وړ ده چې روان لمريز کال کې فراه کې له شنوخونو دوه ميليونه او ۲۵۱ زره افغانۍ عايد ترلاسه شوي دي.

## لوګر کې ۱٦ سیاحتي شرکتونو او د آنلاین خدمتونو مرکزونو ته جوازونه وېشل شوي

د لوګر د اطلاعاتو او فرهنګ رياست د فرهنګ او ګرځندوی آمر، محمد ګل تسل باختر اطلاعاتي آژانس ته ويلي چې په روان لمريز کال کې ۱۶ سياحتي شرکتونو او د انلاين خدمتونو د ثبت مرکزونو فعاليتونه قانوني شوي او پرې جوازونه وېشل شوي دي.دغه راز نوموړي زياتوي، چې د دغو جوازونو په وېشلو سره د يادو شرکتونو او د انلاين خدمتونو د ثبت مرکزونو کې شاوخوا ۵۰ تنو ته په مستقيم ډول د کار زمينه برابره شوې او ترڅنګ يې د لوګر اوسېدونکو لپاره ښې اسانتياوې هم رامنځته شوې دي.د يادونې وړ ده، چې اوس مهال لوګر کې ټول ټال ۲۹ سياحتي شرکتونه او د انلاين خدمتونو مرکزونه شتون لري.

## ملګروملتونو له افغانستان سره د مرستې لپاره ۱۹ میلیونه ډالره ځانګړي کړي

د ملګرو ملتونو د بشري مرستو د همغږۍ اداري ((اوچا)) ويلي، د دغه سازمان د بېړني غبرګون مرکزي صندوق افغانستان سره د مرستې لپاره ۱۹ ميليونه ډالره ځانګړي کړي دي.افغانستان کې د ملګروملتونو د سياسي استازولۍ يا يوناما مرستيال انډريکا راټواټ ويلي چې دغه پيسې به افغانستان کې اړمنو کورنيو ته د لومړنيو مرستو د برابرولو لپاره ولګول شي.

## لوګر کې پر ۱۰ کیلو متره سړک د کرېړ اچولو چارې پیل شوې

د لوګر ولايت ځايي مسئولين وايي ،چې د دغه ولايت د محمداغې ولسوالۍ اړوند پر ۱۰ کيلومتره سړک د کرېړ اچولو چارې پيل شوې دي.د يادې ولسوالۍ ښاروال انجنير نصيراحمد جبير باختر اطلاعاتي آژانس ته ويلي، چې له واغجان بازار څخه تر زرغون



ښار پورې پر ۱۰ کيلومتره سړک د کرېړ اچولو چارې پيل شوې دي.نوموړي زياتوي، چې دغه سړک د ژمي د وروستيو اورښتونو له امله سخت زيانمن شوي و، نو ځکه يې د محمداغې ولسوالۍ د ښاروالۍ له لوري د بيارغونې چارې پيل شوې دي.د جبير په وينا، د دغه سړک په رغيدو سره به د ۱۰ زره کورنيو د تګ راتګ ستونزې هوارې شي.په همدې حال کې د سيمې اوسېدونکو د ياد سړک د بيارغونې له کارونو خوښي څرګنده کړې او له دولت څخه يې د نورو ورته پروژو د پلي کېدو غوښتنه کړې ده.

## ننګرهار کې د یوه سړک د پخولو چارې پیل شوې



د جلال اباد ښاروالۍ مسئولين وايي، چې د دغه ولايت په دويمه ناحيه کې د ۱۹ ميليونه افغانيو په لګښت د يوه سړک د پخولو چارې پيل شوې دي.
د جلال اباد ښاروالۍ رسنيز دفتر باختراطلاعاتي آژانس ته ويلي، چې د دغه ولايت په دويمه ناحيه کې د ياد رياست له انکشافي بودجې څخه د ۱۹ ميليونه افغانيو په لګښت د ۶۶۰ متره په اوږدوالي او ۱۲ متره سور سره د يوه سړک د پخولو چارې پيل شوې دي.
د سيمې اوسېدونکو د دې پروژې له پيله هرکلي کړي او ويلي يې دي، چې د دغه سړک په جوړېدو سره به ورته د کار زمينه برابره او د دوي د تګ راتګ ستونزې به حل شي.

## بهرني لنډ خبرونه

## روسيې د امريکا او ايران تر منځ پر منځګړيتوب موافقه کړې

يو شمېر بهرنيو رسنيو ويلي، د روسيې ولسمشر ولاديمير پوتين موافقه کړې ،چې د ايران د اټومي وسلو په اړه د شته تاوتريخوالي د حل په موخه به د ايران او امريکا ترمنځ منځګړيتوب وکړي. بلومبرک د پوتين په حواله ويلي، چې د ټرمپ اداري سره به د ايران د اټومي وسلو پر سر د خپلمنځي ستونزو د حل او منځني ختيځ کې د ايران د يو شمېر ډلو د ملاتړ په اړه له امريکا سره د منځګړي په توګه خبرې اترې وکړي. په مسکو کې له دې موضوع سره بلدو کسانو ويلي، چې ټرمپ له ايران سره د اټومي وسلو پر سر راپورته شوې مسئله په فبروري مياشت کې له پوتين سره د ټيلفوني اړيکي پر مهال شريکه کړې چې وروسته له هغې د امريکا او روسيې ډيپلوماتانو په رياض کې د همدې موضوع په اړه خبرې وکړې.

## انتونیو ګوترېش قاهره کې د سوریې له ولسمشر سره کتلي

د ملګرو ملتونو سرمنشي انتونيو ګوترېش لا وړمه ورځ د مصر په پلازمېنه قاهره کې د عربي هېوادونو د سرمشريزې په څنډه کې د سوريې له انتقالي ولسمشر احمد الشرع سره ليدنه کړې ده.د ملګرو ملتونو وياند استفان دوجاريک وايي، چې دواړو لورو د سوريې لپاره د نوي مسير د ټاکلو تاريخي فرصت او د دې هېواد پر وړاندې د خنډونو په اړه خبرې کړې دي.ښاغلي ګوترېش په دې ليدنه کې ژمنه کړې، چې ملګري ملتونه به د سوريې د بيارغونې او د خلکو د بشري اړتياوو د رفع کولو ملاتړ وکړي.د ملګرو ملتونو له سرمنشي دا د احمد الشرع لومړۍ کتنه ده.



## ملګرو ملتونو ۱۱۰ میلیونه ډالره د بشري مرستو په موخه ځانګړي کړل

ملګرو ملتونو له خپل بيړني صندوق څخه په يو شمېر هېوادونو کې د بشري مرستو د تامين لپاره ۱۱۰ ميليونه ډالره ځانګړي کړل.دغه ګام د امريکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ له لوري د ياد هېواد د بهرنيو مرستو او د امريکا د پراختيايي اداري «USAID» په ګډون د يو شمېر مرسته رسوونکو بنسټونو د بوديجې له لغوه کېدو وروسته اخيستل شوی. ملګرو ملتونو له دې وړاندې هم په روان کال کې د مالي مرستو د بېساري کمښت خبرداری ورکړی و.

